# خدا کی
# دوستی
# اور اعمال


شیخ العرب والعجم عارف باللہ حضرتِ اقدس

مولانا شاہ حکیم محمد اختر صاحب دامت برکاتہم



**خانقاہ امدادیہ اشرفیہ**

گلشن اقبال بلاک نمبر ۲ کراچی

# دخدای دوستی
# څلور اعمال

شیخ العرب والعجم عارف باللہ حضرتِ اقدس

**مولانا شاہ حکیم محمّد اختر صاحب دامت برکاتہم**

**خانقاہ امدادیہ اشرفیہ**
گلشن اقبال بلاک نمبر ۲ کراچی

******

# باسمه سبحانه وتعالیٰ

دولایت ومقام ته درسیدو څلوراعماله چی حضرت مولا نا شاه حکیم محمد اخترصاحب دامت برکاتهم دقرآن کریم او احادیث نبوی په رڼاکښی وضع کړی دی په دې دعمل کولوډیر زیات ضرورت دی اوافایده وثمره یی ډیره عامه ده بې شمیره کسانو ته اللّٰه پاك د هدایت ذریعه ګرځولی دی اواینده هم دالله پاك ښخه ددې دګتې اخستو امید لرو داچی د اردو ژبی ښخه وپښتو ژبی ته ژباړل سوی دی نو ددې ښخه ان شاء اللّٰه تعالیٰ هغه کسان چی اردو لیك اولوست نه لری هغه به هم ځنی برخه مندسی. بنده داترجمه وکتل ان شاء اللّٰه د اصل کتاب سره سمون لری اللّٰه پاك دی ومترجم ته اجردارین ورنصیب کړی.

عبدالقیوم آغا ۱۴۲۸/۱۲/۲

ناظم تعلیمات اشرف المدارس

# تعلیمی بیان

عارف باللّٰه حضرت اقدس
مولانا شاه حکیم محمد اختر صاحب
دامت برکاتهم

ځلور اعماله داسی دی چی څوك پرهغه باندی عمل وکی نو ترمرګ دمخه به انشاءاللّٰه تعالیٰ دخدای ولی سی او ددې اعمالو په برکت به انشاءاللّٰه تعالیٰ ددین پر ټولو احکامو باندی دعمل کولو توفیق حاصل کړی ځکه چی دا احکام خلګو ته مشکل معلومیږی په خاطرددې چی پرنفس باندی زور رائحی. کوم طالب علم چی د امتحان په پارچه کی مشکل سوالونه حل کړی هغه ته دآسانه سوالو حل کول ګران کارنه دی. نوبیا پرنفس دزور راوستلو سره او داللّٰه درضا دحاصلولو دپاره چی څوك پر لاندی ذکرسوی اعمالو باندی عمل وکي هغه ته به پرټوله دین عمل کول آسانه سی او هغه به داللّٰه دوست جوړسی.

# ① یو مټ ږیره پریښول

دبخاری شریف حدیث دی

﴿خَالِفُوا الْمُشْرِكِيْنَ وَفِّرُوا اللُّحٰى وَاَحْفُوا الشَّوَارِبَ وَكَانَ بْنُ عُمَرَاِذَا حَجَّ اَوِاعْتَمَرَ قَبَضَ عَلٰى لِحْيَتِهٖ فَمَا فَضَلَ اَخَذَهٗ﴾

(بخاری ج۲ باب تَقْلِيْمِ الْاَظْفَارِ ص۸۷۵)

**ترجمه:** دمشرکینو مخالفت وکړی ږیری پریږدی او بریتونه کوچنی کی.

اوحضرت ابن عمر رضی الله عنه چی حج یا عمره کوله نو بې خپله ږیره په خپل مټ کی ونیوله چی ترمټ به زیاته وه هغه بې غچی کړل.دبخاری شریف په بل حدیث کی راغلی دی چی رسول الله ﷺ وفرمایل

﴿اِنْهَكُوا الشَّوَارِبَ وَ اَعْفُوا اللُّحٰى﴾

(بُخاری ج۲ بابُ اعفاء اللّحٰی ص۸۷۵)

ترجمه:بريتونه ښه کوچنی کی او ږيری لوی کی.
نوبيا يومټ ږيره پريښول واجب ده لکه څنګه چی د وترلمونځ واجب دی، دکوچنی اخترلمونځ يا دلوی اخترلمونځ واجب دی همدا رنګه يومټ ږيره پريښول هم واجب ده اودڅلورو امامانو پردې باندی اجماع ده، ديوه امام په دې کی اختلاف نسته. علامه شامی ليکلی دی

﴿ اَمَّا اَخْذُاللِّحْيَةِ وَهِىَ مَادُوْنَ الْقُبْضَةِ كَمَا يَفْعَلُهُ بَعْضُ الْمَغَارِبَةِ وَمُخَنَّثَةُ الرِّجَالِ فَلَمْ يُبِحْهُ اَحَدٌ ﴾

(شامی جلد۱ص۱۲۳)

**ترجمه:** دږيری وهل چی هغه ترمټ کمه وی لکه ځينی مغربی اوسيدونکی او خناثا (نرښځوکی) يې کوی دهيچا په نيز جوازنه لری.

حکيمُ الامت مجددُ الملت حضرت مولانا اشرف علی

تهانوی رحمة الله علیه په خپل کتاب بهشتی زیور حصه ۱۱ صفحه نمبر ۱۱۵ کی لکیلی دی چی دږیری خریل یا کونډی کول یعنی تریوه مټ کمول دواړه حرام دی او ږیره دزامی ځخه ده پدې خاطر تر زنی لاندی هم باید یومټ وی او دمخ یوطرف او بل طرف هم باید یویو مټ وی یعنی درو سرو طرفوته یومټ ږیره پریښول واجب ده. ځینی خلګ خو تر زنی لاندی ږیره یومټ پریږدی مګر دمخ یو طرف اوبل طرف کوچنې کی، ښه پوه سی چی ږیره درو سرو طرفوته یومټ پریښول واجب ده که په یوه طرف کی هم تر یوه مټ د وریجی د دانې په اندازه کمه وی نوداسی کول حرام او ګناه کبیره ده.

## ⑵ بجلکی ښکاره کول

دنارینوو دپاره بجلکی پټول حرام او ګناه کبیره ده.دبخاری شریف حدیث دی

﴿ مَااَسۡفَلَ مِنَ الۡکَعۡبَیۡنِ مِنَ الۡاِزَارِفِی النَّارِ ﴾

(بخاری ج۲ص ۸۶۱بَابُ مَااَسۡفَلَ مِنَ الۡکَعۡبَیۡنِ فِی النَّارِ)

**ترجمه:** په ازار ( پر توګ، لُنګ، اوږد قميص، لنګوټه، پټو او داسی نور) سره چی دبجلکو هرڅونه حصه پټه سی د دوزخ په اور به سوځی.

معلومه سوه چی بجلکی پټول کبیره ګناه ده ځکه چی پرصغیره ګناه باندی د دوزخ عذاب نسته.حضرت مولانا خلیل احمد سهارن پوری رحمة اللّٰه علیه په بذل المجهود شرح ابی داؤد کی لیکلی دی چی د ازار څخه معنٰی هغه لباس دی چی دپورته څخه کښتی ته راغلی وی لکه پرتوګ، لُنګ یا اوږد قمیص او داسی نور چی په دغه باید بجلکی پټی نسی. کوم لباس چی دلاندی دخوا پورته راځی لکه جرابی په دغه بجلکی پټول ګناه نه لری.

لهٰذا که غواړې چی بجلکی پټی کې نوجرابی وکه لیکن دجرابی داستعمال باوجود هم پرتوګ،

لُنګ، پټو یا اوږد قمیص او داسې نورشیان تربجلکو کښته ساتل جواز نه لرې بلکه په داحال کې هم دپورته ځخه کښتې ته راغلی لباس د بجلکو ځخه پورته ساتل واجب دی او بجلکې په دووحالتو کې ښکاره کول ضروری دی

(۱) کوم وخت چې ولاړیاست

(۲) کوم وخت چې روان یاست.

که چیرې په ناسته کې یا په پروتې بجلکه په ازار پټه سې نوهیڅ ګناه نه لرې. بعضې خلګ دا فکرکوی چې بجلکې صرف په لمانځه کې باید ښکاره سې نو کله چې مسجد ته داخل سې پایڅې پورته کې دا یوه ډیره ناپوهی ده، ښه پوه سې چې بجلکې ښکاره کول صرف په لمانځه کې ضروری نه دی بلکه په وخت کې دولاړې او رفتار هم بجلکې ښکاره کول ضروری دی که نی ګناه کبیره پر لازمیږی.مولانا خلیل احمد سهارن پوری رحمة اللّٰه علیه فرمائی

﴿ وَهٰذَافِیْ حَقِّ الرِّجَالِ دُوْنَ النِّسَآءِ ﴾

(بذل المجهود کتاب اللباس ص٥٧)

او داحکم صرف دنارینوو دپاره دی، ښځو ته دبجلکو دپټولو حکم دی. یوصحابی وحضرت محمد ﷺ ته عرض وکی

﴿ اِنِّی حَمِشُ السَّاقَیْنِ ﴾

چی زما پوندی وچی سویدی.مطلب یی داوو چی ددې ناجوړی په وجه زه بجلکی پټولای سم؟ حضرت محمد ﷺ هغه ته دبجلکی د پوټولو اجازه ورنه کړه او ورته وئې فرمایل

﴿ اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ الْمُسْبِلَ ﴾

(فتح الباری ج١٠ کتاب اللباس ص٢٦٤)

**ترجمه:** اللّٰه تعالیٰ دبجلکو دپټونکی سره محبت نه کوی. محترمو دوستانو فکر وکی چی په بجلکو پټولو باندی دخدای دمحبت څخه محروم پاته کیدل

داځنګه عقلمندی ده. حضرت محمدﷺ یو صحابی
ته چی پټو پر مځکه ورپسی ځکیدی وفرمایل
﴿ اَمَالَکَ فِیَّ اُسْوَةٌ ﴾
(فتح الباری ج۱۰ کتاب اللباس ص۲٦۳)
ترجمه:آیا زما د ژوند په طریقه کی ستا دپاره نمونه
نسته؟ بس د محبت دپاره خالی په ژبه دعوې کافی نه دی،
محبت خو څوك دمحبوب پر اطاعت باندی مجبوره کوی.
لَوْ کَانَ حُبُّکَ صَادِقاً لَاَ طَعْتَهُ
اِنَّ الْمُحِبَّ لِمَنْ یُّحِبُّ مُطِیْعٌ
یعنی که چیری ته په محبت کی صادقه وای نو
دمحبوب اطاعت به دی کولای ځکه چی عاشق
دچاسره محبت کوی د هغه امرمنونکی او فرمانبرداره
وی. بس دمحبت تقاضا داده چی موږ باید دالله اود
رسول نافرمانی ونه کو، ددوی پر هرامر باندی عمل
وکو نوبیا موږ په محبت کی رښتینی یو.

پورته ذکرسوی دوه عمله خو دنارینوو دپاره دی.ددې پر ځای دی ښځی لاندی ذکرسوی دوه عمله وکی نو انشاءالله تعالیٰ دخدای دوستانی به جوړی سی.

## ۱ شرعی پرده

نن سبا په یوه ګناه کی عام مبتلا یو او هغه دشرعی پردې نه کول دی. عام خلک خوښه کوې ځینی خاص کورنۍ هم پکښی اخته دی چی دفامیل (خاندان) دنامحرمو څخه پرده نه کوی. ښځی چی دکوره څخه وزی نو چادری وکی مګر دنامحرم دوستانو څخه پرده نه کوی که څه هم ددوی څخه پرده کول دشریعت حکم دی ځکه چی ددوی سره ډیری اړیکی پیښیږی .لهٰذا دخاندان د نامحرمو سره ډیر احتیاط ضروری دی.

دښځو دپاره لاندی ذکر سوی دوستان نامحرمه دی پدې خاطر ددوی څخه پرده کول ضروری ده.

دخاله مېره، دعمه مېره، د اکازوی، دعمه زوی، دخاله زوی، دماما زوی، دخورمېره، دمېره ټوله نارینه دوستان بیله خسرڅخه دا ټوله نامحرم دی. ښځو ته پکار ده چې دلیوره څخه پرده په خاصه توګه وکی. یوې ښځې دحضرت محمد ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې موږ دلیوره (د مېره د ورور) څخه پرده وکو، حضرت محمد ﷺ ورته وفرمایل چې لیورخو مرګ دی مرګ یعنی څرنګه چې مرګ ژوند ختموی همدا رنګه دلیوره څخه پرده نه کول دین برباده وی پدې خاطر دلیوره څخه باید داسی وبیرېږې لکه څرنګه چې د مرګ څخه بیرېږې، ځکه چې پدی کی فتنه ډېره ده پدې خاطر حضرت محمدﷺ په ټېنګه سره داجمله وفرمایل.

دشرعی پردې دا مطلب نه دی چې دروازه په ځان پسی بنده که اوپه خونه کی کښېنه بلکه که کور کوچنې دی نوغټ پوړنی ښه پرمخ را ایله که چې مخ دی

څوك ونه وینی اوپه پوړنی باندی بدن پټ که دکورکار کوه، لیکن که په کور کی څوك نه وی نو دنامحرم سره یوازی توب جائز( روا) نه دی او بې ضرورته د نامحرمو سره خبری مه کوی. که چیری یوضروری خبره وی مثلاً دکور سودا راغواړې نوپه پرده کی لږ په دروند آواز ورته ووایه اوپر یوه دسترخوان باندی دنامحرمو سره ډوډی مه خوری یائې دخپلو مړو سره وخوری یا ښځی دی یوځای وخوری او نارینه دې بېل ځای وخوری. دغه رنګه کوچنی هلکان په کورکی مزدوران کی کله چی هغه ځوانان سی نو دکور بی بی وائی چی دده څخه څه پرده کوم، دې خوما لوی کړی دی. ښه سرخلاص کړی چی دده څخه پرده کول واجب ده، دکوچنیوالی احکام جلا دی او دلویوالی احکام جلا دی، دکوچنی په پاکولو یا لویولو سره څه کیږی، هغه سی خو خپل اولاد هم په کوچنیوالی پاکوې او لمبوې مګرکله چی ځوان

سی بیا ئې هم پاکولای سي؟ دځوانی وروسته چی دخپل اولاد دپاره احکام بدل سول نو مزدور خو نامحرمه دی دده څخه پرده نه کول سخته ګناه ده.

همدا رنګه نن سبا یوه بله ناجوړی هم پیدا سویده هغه داده چی دې زما دینی ورور دی، دې زما دینی زوی دی. دخولی په ویلو سره نه څوك ورورکیږی او نه زوی کیږی، ددوی څخه پرده ده.

## ۲ دخاوند دحقوقو خیال ساتل

دښځو دپاره دخدای دوستی دحاصلولو دوهم خاص عمل دخاوند دحقوقو خیال ساتل دی.ددې عمل په برکت به انشاء اللّٰه تعالیٰ ودوی ته قُرب عظیم (داللّٰه تعالیٰ ډیر نژدیوالی) ورپه نصیب سی، اللّٰه تعالیٰ دخاوند ډیرحق ایښی دی، هغه ته ئی ډیرعظمت اوبُزرګی ور کړیده اوهغه یې پر ښځو باندی حاکم ګر ځولی دی. پدې خاطر خاوند

خوشحاله ساتل ډیرلوی عبادت دی اوهغه خوابدی کول ډیره ګناه ده.

رسول الله ﷺ فرمایلی دی هره ښځه چی پنځه وخته لمونځ کوی، دروژې په میاشت کی روژې نیسی او خپل عزت او ناموس ساتی یعنی بدکاری نه کوی او دخپل خاوند تابعداری او فرمانبرداری کوی نو هغې ښځی ته اختیاردی چی دهری دروازې څخه وغواړی جنت ته ولاړه سی یعنی دجنت په اتو دروازو کی دهری دروازې څخه ددې زړه وغواړی وجنت ته دی ورداخله سی.

رسول الله ﷺ فرمایلی دی هری ښځی ته چی مرګ په داسی حال کی راسی چی دهغې خاوند دهغې څخه خوشحاله وی نوهغه جنتی ده. رسول الله ﷺ وفرمایل که ما دخدای څخه ماسوا وبل چاته دسجدې امر کولای نوښځی ته به می حکم کړی وای چی خپل خاوند ته

سجده و کی (مګر بیله الله پاك څخه بل چاته سجده کول روانه ده پدې خاطر ښځی ته هم روانه ده چی خپل خاوند ته سجده و کی).

رسول الله ﷺ فرمایلی دی کله چی خاوند خپله ښځه دخپل کار دپاره راوبولی نو فوراً دی وده ته راسی حتیٰ که په نغری یا دیګدان کی د ډوډی پخولو دپاره ناسته وی هم دی وده ته راسی. رسول الله ﷺ فرمایلی دی که خاوند خپله ښځه دخپل ځان سره دپری ایستلو (جماع) دپاره راوبلله اوهغه نه ورغله اوخاوند داغسی په غصه کی بیده سو نوټولی ملائکی ترسهاره پوری پردغه ښځی باندی لعنت وایی اوکه چیری شرعی اوطبیعی عذر لری نو وخاوند ته دی ووایی مثلاً دمریضی(حیض) شپې می دی داشرعی عذردی یاکه ناجوړه وی نودی عذر ورته و کی داطبیعی عذر دی.

رسول الله ﷺ وفرمایل چې په دنیا کې چې یوه ښځه خپل خاوند زهیره وی نوهره حوره چې په جنت کې دده کیږی وایی چې خدای پاك دی ستاییخ وکاږی دی مه زهیروه، دی خو یو څو شپې ستا میلمه دی، دی خوتا پریږدی وموږته راځی.

رسول الله ﷺ فرمایلی دی چې درې قسمه انسانان داسی دی چې دهغو نه لمونځ قبلیږی اونه یې یوه بله نیکی قبلیږی په هغوکی یوه هغه ښځه ده چې دهغې خاوند دهغې څخه ناراضه وی. یوچا درسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې یارسول الله ﷺ ترټولو ښه ښځه کومه یوه ده؟ نبی علیه السلام وفرمایل هغه ښځه چې خاوند ئی هر وخت دهغې وخواته وګوری نوخوشحاله ئی کړی، چې هغه یوڅه ورته ووایی نودهغه خبره ومنی او په خپل ځان او مال کی هیڅ دده مخالفت ونه کړی او دخاوند یو حق دادی چې خاوند پرکور وی دده بی

اجازې نفلی روژې ونه نیسی، نه نفلی لمونځ وکړی او یوحق دخاوند دادی چی دخاوند ومخته به په خراب خیرن شکل سره نه واوسیږی بلکه په ښائست او سینګار سره باید واوسیږی او دخاوند یوحق دادی چی دخاوند بیله اجازې دکورڅخه دباندی هیڅ ځای ولاړه نه سی نه دعزیز اوقریب کورته نه دبل چاکورته.

## ۳ دنظر حفاظت کول

پدې معامله کښی نن سبا عام غفلت دی. بدنظری خلګ ګناه هم نه بولی. که څه هم دنظردحفاظت حکم اللّٰه تعالیٰ په قرآن پاك کی ورکړیدی.

﴿قُلْ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَغُضُّوْا مِنْ اَبْصَا رِهِمْ﴾

ترجمه :اې نبی! تاسی ایمان والوته ووایاست چی د خپلو بعضو نظرو حفاظت وکړی.

یعنی نامحرمو انجونو او نامحرمو ښځوته مه ګوری.

دغه رنګه بې پرېږي او بې برېتو هلکانو(لغړزنو) ته مه ګوري یا که چیری پرېره او برېتونه یی هم راغلی وی او دهغو طرف ته میلان (شوق) کیږی نو دهغو طرف ته کتل هم حرام دی یعنی دکومو مخانو طرف ته په کتلو سره چی نفس حرام خوند اخلی دداسی مخانو طرف ته کتل حرام دی او دنظرحفاظت دونی ضروری دی چی اللّٰه تعالیٰ په قرآن کریم کی ښځوته جلا حکم ورکړیدی

﴿یَغۡضُضۡنَ مِنۡ اَبۡصَارِهِنَّ﴾

ښځی دی هم د خپل نظرحفاظت و کړی

حال داچی په لمانځه روژه اوپه نورو احکامو کی ښځوته جلا حکم نه دی ورکول سوی بلکه نارینوو ته حکم ورکول سویدی اوښځی دتابع سوی په حیثیت پدې احکامو کی شاملی دی.

دبخاری شریف حدیث دی

﴿زِنَی الْعَیْنِ النَّظَرُ﴾

(بُخاری ج۲ کتاب الاستیذان زنی الجوارح دون الفرج ص۹۲۳)

**ترجمه:** د سترګو زنا ده نظر بازی.

بدنظره او زناکار دالله تعالیٰ دوستی په خوب هم نسی لیدلای ترهغه وخته پوری چی ددغه کار څخه په رښتیا سره توبه ونه کاړی او دمشکوٰة شریف حدیث دی

﴿لَعَنَ اللّٰهُ النَّاظِرَوَالْمَنْظُوْرَ اِلَیْهِ﴾

(مشکوٰة کتاب باب النظر الی المخطوبه)

**ترجمه:** دالله تعالیٰ لعنت دی وی پربدنظری کوونکی باندی او څوك چی خپل ځان دبدنظری دپاره مخ ته کی.

بس پرناظر (کتونکی) اومنظور (لیدونکی) دواړو باندی دالله رسول ﷺ دلعنت ښیرا فرمایلی ده، د اولیا دښیرا څخه بیریدونکی دی د سیدالانبیاء ﷺ دښیرا څخه

ویبیږی چی دحضرت محمد ﷺ دغلامی په صدقه کښی بزرګی حاصلیږی. لهٰذا که چیری پر کومه ښځه باندی سترګی ولګیږی نو ژر تر ژره سترګی واړوه یوه لحظه ئی هم پر هغې مه پریږ ده. نو بیا دقرآن پاك لوړ ذکر سوی آیات مبارك اودحدیث شریف په رڼا کښی بدنظری کوونکی ته درې بدلقبه ورکول کیږی

١ د الله او درسول ﷺ نافرمان

٢ د سترګو زناکار

٣ ملعون یعنی لعنتی

که چا ته پدې لقبو وویل سی نو څونه سپکاوی به وی. لهٰذا که غواړې چی ددې لقبونو څخه ځان وساتې نو دنظرحفاظت ضروری دی.ځینی خلګ وائی چی صاحبه نه می څه اخیستی دی نه می څه ورکړی دی صرف ورته ومی کتل، دا ملایانو بیکاره

په موږ پسی سوټی را اخیستی دی.اې خلګو ملایان مونه ځغله وی اللّٰه او رسول منع فرمایی. ملا مسئله نه جوړوی مسئله درته وائی لکه څنګه چی مو پورته قرآن او حدیث درته ذکرکړی دی، آیا دا دملا خبری دی؟ او زه درته وایم چی نه دی څه اخیستی اونه دی څه ورکړی، صرف ورته ودی کتل، که چیری دونه معمولی خبره ده نوبیا ولی ورته ګورې؟ مه ورته ګوره.

نودا معلوم سول چی په کتو سره ضرور څه اخلی اوڅه ورکوې په دغه خاطرخو ورته ګورې اوهغه حرام خوند او لذت دی چی دسترګو په ذریعه وه زړه ته حاصیلیږی اوپه هغه دزړه خانه خرابه سی.

داللّٰه تعالیٰ څخه دونه لیری کیدل بل په هیڅ ګناه کی نسته لکه څونه چی پدې ګناه کښی دی.دزړه قبله وربدله کی، دزړه رُخ (توجه) چی ۹۰ درجې داللّٰه تعالیٰ

طرف ته وو په بدنظری ۱۸۰ درجې و ګرځی یعنی دالله تعالیٰ طرف ته شا اوهغې ښځی ته یی مکمل رُخ سو. اوس که لمونځ هم کوی نو هغه ښځه ئی مخته ده، که قرآن کریم وایی هم دامخ ته ده، که یوازی ناست یی هم دهغې طرف ته فکر وی. پرځای دالله تعالیٰ اوس ئی هروخت دهغې ښځی خیال او فکر په زړه کی دی.

دزړه داسی بربادیدل په بل هیڅ ګناه کی نسته مثلاً لمونځ دی قضا کړی یا درواغ دی وویل یا یوڅوك دی په عذاب کړی نو دزړه رُخ (توجه) مثلاً ۴۵ درجې دالله تعالیٰ څخه واوښتی. بیادی توبه وکښل، د حقداره څخه دی بخښنه وغوښتل نو دزړه رُخ بیرته دالله تعالیٰ طرف ته صحیح سو مګر دبدنظری ګناه داسی ده چی بنده دالله تعالیٰ څخه بالکل غافله سی اوهغه حسن یا ښکلا یی په زړه کی ځای ونیسی. دځینو انسانانو خاتمه

هم په خرابه سول.

د کنزالعُمَّال حدیث دی اللّٰه تعالیٰ په حدیث قدسی کی فرمائی

﴿ اِنَّ النَّظَرَ سَهُمٌ مِنْ سِهَامِ اِبْلِيُسَ مَسْمُوُمٌ مَنْ تَرَكَهَا مَخَافَتِيُ اَبْدَلْتُهُ اِيُمَانًا يَّجِدُ حَلَاوَتَهُ فِيُ قَلْبِهِ ﴾

(کنزالعُمَّال ج٥ ص٣٢٨)

**ترجمه:** نظرد ابلیس دغشو څخه یوغشی دی په زهرو کی وهل سوی چا چی زما دبیری څخه دغه ترك کړی ددې په بدله کی به وده ته داسی ایمان ورکم چی دهغه خوږوالی به پخپل زړه کی حاصل کړی.

یعنی هغه به واجد وی اوحلاوتِ ایمانی (خوږوالی دایمان) به دده په زړه کی موجود وی داخیالی، تصوری او وهمی دنیا نه ده، وحی الٰهی ده. دایی نه دی فرمایلی چی ته فکر وکه چی دایمان خوږوالی می وزړه ته راغلی

بلکه ﴿ يَجِدُ ﴾ يې فرمايلې دی چې ته به پخپل زړه کې داخوند حاصل کړې.

محترمو دوستانو عمل وکړی او وګوری زړه به يوداسې خوږوالی حاصل کړی چې ددنيا سلطنت او باچهۍ به ورته بې قدره سی.علامه ابوالقاسم قشيری رحمة الله عليه په رساله قشيريه کې ليکلی دی چې دنظر دحفاظت په حکم ورکولو سره الله تعالٰی دسترګوخوند واخيستی مګر په عوض کې ئې دزړه غيرفانی (نه ختميدونکی) خوږوالی را کړی او ملاّعلی قاری رحمة الله عليه فرمائی

﴿ وَقَدْ وَرَدَاَنَّ حَلَا وَةَ الْاِيُمَانِ
اِذَا دَخَلَتْ قَلْبًا لَا تَخْرُجُ مِنْهُ اَبَدًا ﴾

(مرقاةج١ ص٧٤)

**ترجمه:** حلاوتِ ايمانی(خوږوالی دايمان) چې کوم زړه ته داخل سی بيا هيڅکله نه ځينی وزی.

ملّاعلی قاری رحمة اللّٰه علیه ددې په تشریح کی فرمائی

﴿ فَفِيۡهِ اِشَارَةٌ اِلٰی بَشَارَةِحُسۡنِ الۡخَاتِمَةِ ﴾

(مرقاة)

اوپه دې کی دښې خاتمې زیری دی ځکه چی ایمان دزړه څخه وتلای نسی نوخاتمه هم پر ایمان کیږی .لهٰذا دنظر حفاظت دښې خاتمې ضمانت هم دی.

محترمو دوستانو نن سبا دا دښه خاتمې دولت پربازارو، پر هوائی میدانو او پر استادګاؤ باندی تقسیمیږی پردې ځایو باندی خپل نظرونه وساتئ اوپه زړه کی دحلاوتِ ایمانی(دایمان خوند) ذخیره کړی او دښې خاتمې ضمانت واخلی. پدې خاطر زه درته وایم که چیری نن سبا بې حیائی او بې پردګی ډیره ده نو ایمانی خوندونه هم بې شمیره دی. دسترګوحفاظت وکی او د ایمان خوندونه حاصل کړی.

## ۴ د زړه حفاظت کول

دنظر دحفاظت سره دزړه حفاظت هم ضروری دی. ځنی خلک خو دنګاه چشمی حفاظت وکی لیکن دنګاه قلبی حفاظت نه کوی یعنی دسترګو حفاظت خو ئی وکی لیکن دزړه دسترګو حفاظت نه کوی اوپه زړه کی دښایستو مخانو خیال په راوستلوسره حرام خوند اخلی، ښه پوه سی چی داهم حرام دی اللّٰہ تعالیٰ فرمائی

﴿ يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْاَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُوْرُ ﴾ (الاية)

ترجمه: اللّٰہ تعالیٰ ستاسی دسترګو په غلاء او ستاسی دزړو په رازو ښه خبردی. ته چی په زړه کی حرام خوندونه اخلی اللّٰہ تعالیٰ په هغه خبردی.

دتیرو ګناهونوخیالات راتلل بد نه دی، راوستل ئی بددی. که چیری غلط خیال راسی نو پرهغه باندی هیڅ نیونه نسته مګر دخیال د راتللو وروسته په هغه کی مشغوله

کیدل یا دتیرو ګناهو په یادولو سره دهغه څخه خوند اخیستل یا دآینده ګناهو لاری جوړول یا دښځو خیال په زړه کی راوستل داټوله حرام دی او داللّٰه تعالیٰ دناراضه کیدوسبب دی اوپه زړه کی دغلط خیالات راوستلو یو لوی تاوان داهم دی چی په دغه سره دګناهونو غوښتنی نوری هم ډیریږی چی بیا په دغه سره دبدن ټوله غړی په ګناهو کی د اخته کیدو قوی اندیښنه سته. اللّٰه تعالیٰ دی حفاظت راپه نصیب کړی اوددې حراموکارو څخه مو دی وساتی.ددې څلورو حراموکارو پریښولو په برکت به انشاءاللّٰه تعالیٰ دټولو ګناهو پریښول ورته آسانه سی.

## پرپورته ذکرسوی څلوراعمالو باندی دتوفیق دپاره څلور تسبیحات

دپورته ذکرسوی حرامو اعمالو څخه دځان دساتلو

دپاره څلور وظيفې دی چی دهغه په ويلو سره روح قوی کيږی اوکله چی روح قوی سی نو بيا دګناهو څخه دځان ساتنه به ورته آسانه سی.

## ① يوه تسبيح (۱۰۰) واری لَآاِلٰهَ اِلَّا اللّٰه ووايه

دمشکوٰة شريف حديث دی

﴿ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ لَيُسَ لَهَا حِجَابٌ دُوْنَ اللّٰهِ ﴾

(مشکوٰة باب ثواب التسبيح والتيحميد والتهليل والتکبيرص۲۰۲)

**ترجمه:** د لَااِلٰهَ اِلَّااللّٰه او داللّٰه تعالٰی ترمينځ هيڅ پرده نسته.

کله چی بنده پرمځکه باندی داکلمه وايی نوعرش عظيم ته دهغه لَااِلٰه رسيږی. لَااِلٰهَ اِلَّااللّٰه دويلو طريقه دا ده چی کله لَااِلٰهَ واياست نولږڅه فکروکی چی زما لَا اِلٰهَ عرش عظيم ته ورسيده اوکله چی اِلَّا اللّٰه واياست نولږڅه

فکر وکی چی دعرش عظیم څخه دیو نورانی ستون په ذریعه داللّٰه تعالیٰ نور زما زړه ته داخلیږی. لږڅه فکر وکی پردماغ باندی ډیر زورمه راولی. په اندازه د اته یا لس واری **لَااِلٰهَ اِلَّااللّٰه** ویلو ورسته **مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ** په ویلو سره کلمه شریفه پوره کی.

## (۲) یوه تسبیح (۱۰۰) واری الله الله ووایه

پراول **اللّٰه** باندی **جَلَّ جَلَالُهٗ** ویل واجب دی یعنی کله چی په یوه مجلس کی داللّٰه پاك نوم یاد سی نو یوواری جل جلاله ویل واجب دی. په محبت سره داللّٰه نوم واخلی اوفکر وکی چی یوه ژبه زما په خوله کی ده او یوه ژبه زما په زړه کی ده او ددواړو څخه په یووخت کی داللّٰه نوم راوځی او زما دهر وریښته څخه داللّٰه نوم راوځی. لږڅه فکر کافی دی پردماغ باندی ډیر زورمه راولی.

## (۳) یوه تسبیح (۱۰۰) واری استغفار وو وایه

﴿ رَبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَاَنْتَ خَيْرُ الرَّاحِمِيْنَ ﴾

**ترجمه:** اي اللّٰه! زموږ ګناهونه وبخښې
اوپر موږ باندی رحم وکه ځکه چی
تر ټولو ډیر رحم کوونکی یی.

او دلته درحمت څلور تفسیره دی چی حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة اللّٰه علیه فرمایلی دی.

### ۱ توفیقِ اطاعت

دګناهونو دناسیت په وجه داللّٰه تعالیٰ دعبادت او فرمانبرداری توفیق ځینی واخیستل سی نوبنده داللّٰه تعالیٰ څخه دبخښنی په غوښتلو سره د رحمت طلب کوی چی موږ ته بیرته دعبادت او خپل فرمانبرداری توفیق راکړی کوم چی زموږ څخه دګناهو په وجه واخیستل سو او اوس ماستا څخه دخپلو خطاوو بخښنه وغوښتله نولهٰذا بیرته

دا توفیق راته راکړې.

## ۲ پراخی د روزی

دګناهو په خاطر زموږ روزی هم تنګه سی نوبنده دبخښنی په غوښتلو سره دا غواړی چی زموږ روزی را پراخه کړې او برکت هم پکښی واچوې او دبرکت معنٰی ده ﴿ قَلِيۡلُ کَثِيۡرُ النَّفَعِ ﴾ چی په تعداد کی لږ وی خو ګټه ئی ډیره وی.

## ۳ بی شمیره مغفرت

درحمت دریم تفسیر دی بې حسابه مغفرت، اې اللّٰه! دقیامت په ورځ زموږ څخه حساب او کتاب مه اخله ځکه چی ستا رسول ﷺ فرمایلی دی ﴿مَنۡ نُوۡقِشَ عُذِّبَ ﴾ دچاڅخه چی حساب وسو یعنی بحث او مباحثه ورسره وسوه نوهغه ته به عذاب

ورکول کیږی.پدې خاطر اې! اللّٰه دقیامت په ورځ زموږ بې حسابه مغفرت وکړې.

## ۵ اول داخلیدل دجنت

درحمت څلورم تفسیر دی جنت ته اول داخلیدل یعنی دبنده دطرفه څخه دا درخواست دی چی اې اللّٰه! ماستا څخه دځپلو ګناهونو بخښنه وغوښته اوس دقیامت په ورځ ماته سزامه راکوې بیله سزا او عذاب څخه ماته دجنت اول داخیلیدل راپه نصیب کړې.

## ۴ یوه تسبیح (۱۰۰) واری درودشریف ووایه

هره ورځ سل واری درود شریف ووایاست

﴿ صَلَّی اللّٰهُ عَلَی النَّبِیِّ الْاُمِّیِّ ﴾

دامختصر درود شریف هم په حدیث پاك کی راغلی دی اود درود شریف ویلو یو زړه وړونکې طریقه زموږ اول شیخ حضرت مولانا شاه عبدالغنی صاحب رحمة اللّٰه علیه

داسی رابنولې وه چی د درود شریف دویلو په وخت کی دی دافکر وکی چی روضې مبارکی ته مخامخ ولاړیم او دآسمان څخه پرحضرت محمد ﷺ باندی چی درحمت بې شمیره باران اوری دهغه څخه یو څو څاڅکی پرماهم مبنلی.

دقطب العالم حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمة اللّٰه علیه څخه یوچا پوښتنه وکړه چی اول استغفار ووایو او که درود شریف؟په جواب کې ورته وفرمایل چی اول مردار اوخیرن کالی پریولې او که عطر وهې؟ لهٰذا اول روح دګناهو دمرداریو څخه د استغفار په ذریعه پاك که بیا د درود شریف عطر ووهه.

پورته ذکرسوی تسبیحات په پابندی سره ویلو باندی زړه د نور څخه ډکیږی، په روح کی به طاقت پیداسی او دګناهونو د ظلمت (تاریکیو) څخه به یی

وحشت کیږی.هم دغه فرق دی د ذاکر او دغیر ذاکر په مابین کی، چی د ذاکر څخه کله ګناه وسی نوهغه ته ژر دظلمت(تاریکۍ) احساس پیدا سی ځکه چی هغه دنور خاوند دی، دظلمت په راتللو سره بې قراره سی. پدې خاطر ژر دالله تعالی څخه دعفوه په غوښتلو او دګناهونو دتلافی په کولو سره بیرته نور دالله تعالی سره بحال کړی او غیر ذاکر په مثل دړانده دی چی هغه ته دتاریکۍ احساس هم نه پیدا کیږی.

لهذا پردې تسبیحاتو په پابندی سره عمل کولو باندی انشاء الله تعالی په روح کی به دنفس او شیطان سره دمقابلې زبردست قوت پیداسی او دپورته ذکر سوی حرامو اعمالو څخه دځان ساتنه ورته آسانه سی او یوه ورځ به داسی راسی چی دګناه کولو جرأت به ئی نه وی او دګناهونو څخه دځان پرساتنه باندی دالله تعالی دوستی موقوف ده.

الله تعالیٰ فرمائی

﴿اِنْ اَوْلِيَآءُ هٗ اِلَّاالْمُتَّقُوْنَ﴾

**ترجمه:** یعنی زما هیڅ دوست نسته مګر صرف هغه بندګان چی ګناه نه کوی.

نوراته معلومه سوه چی دالله تعالیٰ ددوستی بنیاد تقویٰ ده حتیٰ چی دالله تعالیٰ دولایت ترټولو لوړمقام صدیقیت هم پرتقویٰ باندی موقوف دی.هرڅوك چی هرڅونه ډیرتقویٰ داره دی هغونه لوړ دخدای دوست دی ځکه چی دګناهونو څخه دځان په ساتنه کی زړه غمجن سی او دصبر تریخ غړپ تیرول غواړی نو پر دغه غم باندی الله تعالیٰ دخپلی دوستی عظیم (لوی) انعام ایښی دی .

الله تعالیٰ دې دعمل توفیق راکړی ،کامله تقویٰ دی راپه نصیب کړی او بیله دحق دغوښتنی فقط په خپل مهربانی سره موږ ټوله دولایتِ صدیقیت وانتها ته ورسوی (آمین)

**آفتابت بَرحدث هامی زند**
**لُطفِ عَامِ تونمی جوید سَند**

اې اللّٰه! ستا لمر پرنجاستونو هم لویږی نوهغه هم خپل دفیض څخه نه محرومه کوی ځکه چی ستا مهربانی قابلیت ته نه ګوری. نوبیا دخپل مهربانی یونظر پردې نااهله باندی هم واچوې اوپه جذب کولو سره یی خپل وګرځوې آمین.

## دوې مراقبې ساتونکی د ولایت

دوې مراقبې داسی دی چی څوك یی وکی انشاء اللّٰه تعالٰی دکبر دناجوړی څخه به په امان وی ځکه چی دکبر ناجوړی دونه خطرناکه ده چی په حدیث شریف کی راغلی دی چی دچا په زړه کی زره غوندی کبر وی هغه جنت ته نسی تلای.دې ناجوړۍ ابلیس مردود کړی کله چی ده وویل

﴿ اَنَا خَيۡرٌ مِّنۡهُ ﴾

زه ترآدم علیه السلام بهتر یم

﴿ خَلَقۡتَنِیۡ مِنۡ نَارٍوَّ خَلَقۡتَهٗ مِنۡ طِيۡنٍ ﴾

زه دی د اوره پیدا کړی یم اوهغه دی
دختړو څخه پیدا کړی دی

او د اور زور پرخاوری باندی لوړ دی.په دغه کی ده خبیث بې ځایه اعتراض پرالله تعالیٰ باندی وکی چی ته افضل دفاضل ومختہ کښته کوې.بس هرڅوك چی د ابلیس پرنقشِ قدم باندی ځی یعنی دچا په زړه کی چی تکبر وی خطره ده چی دالله تعالیٰ د درباره څخه وترټل (مردود) سی. پدې خاطر لاندی ذکر سوی مراقبې انشاء الله تعالیٰ دمردودیدو څخه دحفاطت ضمانت دی ځکه چی ددې په برکت سره انشاءالله تعالیٰ په زړه کی تکبرنسی پیدا کیدای. بس دا مراقبې دالله تعالیٰ د دوستی

او ولایت د اعمالو ساتونکی دی ځکه چی هرڅونه نیکیانی ګټل ضروری دی هغونه هم دهغو ساتنه ضروری ده.

اوس که څوك ووائی چی دمراقبې څه ثبوت سته نو زموږ شیخ حضرت مولانا شاه عبدالغنی صاحب رحمة اللّٰه علیه وفرمایل چی دمراقبې دلیل دا حدیث شریف دی

﴿ رَاقِبِ اللّٰهَ تَجِدْهُ تُجَاهَکَ ﴾

داللّٰه تعالیٰ فکر وکه ته به هغه خپل مخ ته وویني.

اولیاء کرام چی کومه مراقبه په خلکوکوی دهغه مقصد هغه دی چی په حدیثِ احسان کی ذکر سوی دی

﴿ اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ کَاَنَّکَ تَرَاهُ ﴾ الخ

داللّٰه تعالیٰ داسی فکر پیداسی لکه ته چی اللّٰه ته ګوري اوچاته چی داسی کیفیت حاصل سی نوبیا هغه

ګناه څنګه کوی اوځوك چی دګناهونو څخه وساتل سو هغه به دالله تعالیٰ دوست سی ځکه چی دولایت بنیاد تقوا ده

﴿ کَمَا قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰی: اِنْ اَوْلِیَآءُ هٗ اِلَّاالْمُتَّقُوْنَ ﴾

الله تعالیٰ فرمائی چی زما هیڅ دوست
نسته مګر صرف متقی بندګان.

مګرنن سبا ځینی جاهل صوفیان، نابلده او ګمراه رقمه خلګ چی کومی مراقبې په خلګوباندی کوی مثلاً په ساعتوفکرپه وهل چی درنا ټکی په غټیدو سره په مختلفو رنګو تبدیل سو یا دمځکی څخه په هوا یم یا ساکت کښینه او فکر وکه ترڅو چی نور دمځکی څخه ترآسمانه ونه وینې حتیٰ چی خلګ ددې جاهلانه مراقبو څخه لیونیان سوی دی.لهٰذا ښه ځان پوه کی چی داسی مراقبې هیڅ کله مطلوب نه دی. پدې خاطردمراقبې مقصد می

لوړ بیان کی چی دالله تعالیٰ فکر په زړه کی داسی ټینګ سی چی دالله تعالیٰ د نافرمانی د اعمالوڅخه حفاظت وسی ځکه چی د نافرمانی په اعمالو باندی بنده دالله تعالیٰ د ولایت اودوستی څخه محرومه سی.

## ۱ اوله مراقبه

### مَااَصَابَکَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ

اوله مراقبه دا ده چی کله یونیك عمل درڅخه وسی نوهغه خپل کمال ونه بولې، دالله تعالیٰ عطاء یی وبوله اوداکومه خیالی خبره نه ده حقیقت دی. الله تعالیٰ فرمائی

﴿ مَااَصَابَکَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ﴾ الخ

کله چی ستا څخه یوه نیکی وسی مثلاً ښه تقریر وسی، ښه لیکنه وسی، ښه تدریس وسی، تبلیغ وسی، دښځو څخه دنظر حفاظت، زړه او دجسم دساتلو توفیق وسی، دالله تعالیٰ په لارکی د خرڅولو توفیق وسی یعنی

کومه حسنه ،کومه نیکی یا کوم ښه کار درڅخه وسی نو اللّٰه تعالیٰ په قرآن پاك کی فرمایی او د کبرعلاج نازله وی چی دغه خپل کمال مه بوله ﴿ فَمِنَ اللّٰه ﴾ دا داللّٰه تعالیٰ عطاء ده، دا دده مهربانی ده، دده فضل دی.د درختی په ریښو کی امبار وی دهغه امبار څخه که خوشبویه ګل پیدا کیږی نوآیا دا د امبارو کمال دی؟ که د امبارو کمال وای نو ګل به بدبویه پیدا کیدای لیکن دبدبویه امبارو څخه خوشبویه ګل پیداکیدل دا داللّٰه تعالیٰ عطاء او دهغه کمال دی. دارنګه زموږ پیدایښت د ﴿ ماء مهین ﴾ څخه سویدی، دپلار منی او دمور دحیض مرداره وینه زموږ تعمیری مواد دی.

لهٰذا دبد اعمالو کیدل زموږ دفطرت څخه لیری نه وه لیکن ددې مرداری مادې څخه پاك اعمال کیږی نو دا ﴿ فَمِنَ اللّٰه ﴾ دی داللّٰه تعالیٰ عطاء دهغه فضل دهغه رحمت او دهغه کمال دی.که خاوری بریښی نودا

دخاورو کمال نه دی دلمر دشعاعو کمال دی لمرکه خپلی شغلی دخاورو څخه ایسته کی نوخاوری به بې نوره سی.

﴿ ماَ اَصَابَکَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ﴾

کی اللّٰه تعالیٰ دتکبر او دخودبینی علاج وفرمایلی چې خپله کومه نیکی خپل ذاتی کمال مه بوله بلکه دا داللّٰه تعالیٰ عطاء ده، داللّٰه تعالیٰ توفیق دی، داللّٰه پاك کومك دی.لکه څرنګه چی پلار دزوی لاس ونیسی اوپرکاغذ باندی یوڅه په ولیکی بیا ورته ووائی چی واه زما زویه تاخو ډیر ښه خط ولیکی ، بس همدا حال زموږ دنیکیو دی چی اللّٰه تعالیٰ خپله توفیق راکوی اوبیا هغه زموږ طرف ته منسوب کړی.

دنیکیو توفیق ورکول هم داللّٰه تعالیٰ مهربانی ده اوهغه زموږ طرف ته منسوب کول دا پرمهربانی باندی مهربانی

ده. زموږ شیخ حضرت شاه عبدالغنی صاحب رحمة اللّٰه علیه به فرمایله چی اللّٰه تعالٰی چی دا فرمایلی دی

﴿ جَزَاءً مِّنْ رَّبِّکَ عَطَاءً حِسَابًا ﴾

**ترجمه:** دا بدله به ورکول کیږی چی کافی انعام به وی ستا درب دطرفه څخه.

نو زموږ دمحدوده عمل جزاء غیر محدوده څنګه کیدلای سوای بس دا جزاء فرمایل هم دهغه عطاء ده. معلوم سول چی دګناهونو څخه دځان ساتلو، دنیك اعمالو، داللّٰه تعالٰی دیاد چی دا توفیق دی، دا ټول داللّٰه پاك عطاء ده دهغه احسان دی، دهغه مهربانی ده زموږ کمال نه دی.

دغه رنګه چی زموږ څخه کومی خطاوی او ګناه کیږی نو په دا بل آیت کی اللّٰه تعالٰی فرمائی

﴿ وَمَا اَصَابَکَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِکَ ﴾

اوستا ځخه چی کومه ګناه وسی هغه ستا دنفس شرارت دی، ستا دنفس حرارت دی، ستا دنفس جسارت دی، حماقت دی، نجاست دی، غلاظت دی. اللّٰه تعالٰی خودنیك اعمالوحکم ورکوی او دبدی ځخه دځان ساتنی حکم ورکوی، داللّٰه تعالٰی وطرف ته دګناه نسبت کول کفردی. لهٰذا اللّٰه پاك فرمائی کومه ګناه چی ستا ځخه وسی هغه دخپل نفس خطا وبوله چی پرهغه باندی په شرمنده کیدو سره زما ځخه بخښنه وغواړې. ﴿اِسۡتَغۡفِرُوۡا رَبَّكُمۡ﴾ کی دبخښنی دغوښتلو حکم دی مګر دلته یی رب (پالونکی) ولی وفرمایل؟

پدې خاطرچی پالونکی دخپل پاللی شی سره محبت لری او پالل سوی شې دخپل پالونکی سره محبت لری، دغه وجه ده چی کوچنې دخپل مور په شا پسې وی ځکه چی ورمعلومه ده چی مورما پالی، حیوان وساته نو

هغه هم په شا پسې وی ځکه چی ورمعلومه ده چی ده زه پاللی یم درب په فرمایلو کی د دواړو محبتو ثبوت دی. درب په فرمایلو سره یی دا راوښوول چی زما خو ستا سره محبت دی چی دی ، مګر ستا هم زما سره محبت دی. محبت د دواړو جانبه څخه کیږی.

اللّٰه پاك دمغفرت امید راکوی ځکه چی زه ستا سره محبت لرم ، زما څخه بخښنه وغواړه زه به تا وبخښم ﴿ اِنَّهٗ كَانَ غَـفَّارًا ﴾ زه ډیر زیات بخښونکی یم زما څخه ولی ناامیده کیږی.

بس هره نیکی دالله تعالی عطاء اوهره ګناه دخپل نفس خطاء وبوله، پرعطاء باندی شکرګذاره اوپرخطا باندی شرمنده اوسه. څوك چی دعطاء اوخطا په مابین کی وی دتکبرڅخه به ساتلی وی او څوك چی دتکبر څخه په امان وی هغه به انشاء اللّٰه د مردودیدو څخه محفوظه وی.

# دوهمه مراقبه

## خپل ځان ترټولو کم سنجولو مراقبه

دوهمه مراقبه ده چې خپل ځان ترټولو کم وبوله اوټوله ترځان ښه وبوله لکه څنګه چې حکیمُ الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة اللّٰه علیه فرمائی چې زه تر ټولو مسلمانانو کمتریم فی الحَال اوتر ټولو کافرانو اوحیواناتوکمتریم فی المآل.لهٰذاهرشخص ته دخپل ځان په باره کې دافکرکول لازم دی چې هرمسلمان فی الحَال ترماښه دی یعنی په موجود حال کې هر مسلمان ترماښه دی که څه هم هغه هرڅونه ګناهګاره، شرابی،کبابی او زانی وی، زه هر مسلمان ترځان ښه بولم ځکه چې ممکنه ده چې سربیره پر ګناهونو دهغه یوعمل داللّٰه پاك په دربار کې قبول سوی وی او دقیامت په ورځ اللّٰه تعالیٰ هغه وبخښی او زما یوعمل

دالله پاك په دربارکې ضبط سوې وي اودهغه په وجه زما پرټولو نيکيو باندې خاورې واوړې او زما نيونه وسي. بس داګمان قايم که دتکبر څخه دنجات دپاره داګمان کول کافي دی، دخپل کمترې يقين کول فرض نه دي په ګمان سره کارکيږي.

او ترټولو کافرانو او حيواناتو څخه ځان کم وبوله في المآل يعنی په اعتبار د انجام زه ترکافرانو او حيواناتوکمتريم ځکه چې اوس دخاتمې علم نسته چې زما خاتمه څنګه ليکلې ده که دکافر خاتمه پرايمان وسوه نو دټوله ژوند دکفر عفوه به ورته وسي اوهغه به جنت ته ولاړسي اوماته دخپل خاتمې علم نسته چې پرکوم حال به وسي.

لهٰذا ترڅوپورې خاتمه پرايمان باندې ونه سي زه ترکافر ځان څنګه ښه وبولم. لهٰذا ترڅوپورې پرايمان باندې خاتمه ونه سي تر ټولو کافرانو زه کمتره يم او

دحیواناتو څخه خو کوم حساب کتاب نه اخیستل کیږی. لهذا ترڅوپوری خاتمه پرایمان باندی ونه سی نو زه ترحیواناتو هم کمتره یم.

لهٰذا دتکبر څخه دحفاظت دپاره سهار او ماښام دا جمله واياست چی یاالله زه ترټولو مسلمانانو کمتریم فی الحالِ او ترټولو کافرانو او حیواناتو کمتر یم فی المآل. الله تعالیٰ دی دعمل توفیق راکړی آمین.

## قرآن پاك دصحیح ویلو کوښښ

په وارو وارو می دا عرض کړیدی چی دقرآن شریف حروف دصحیح کولو کوښښ وکړی . په خپلوخپلو حلقو کی په یوه قاری صاحب باندی د قرآن شریف حروف درست کړی.ځینی داسی غلطئ دی چی گناه کبیره دی. په لحنِ جلی کی حروف تغیرخوری، پدې خاطر قرآن شریف صحیح ویل ډیر ضروری دی.

حکیمُ الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة اللّٰه علیه په لوی لوی علماؤ باندی په تهانه بهون (خپله خانقاه) کی نورانی قاعده (سپاره) وویل بیائي بیعت کړل صحیح تلاوت کول دومره ضروری معامله ده. پدې خاطرعرض درته کوم چی دا معمولی خبره مه بولی، که دیوه شاعرکلام څوك غلط ووایی نوهغه څونه ناراضه کیږی او د اللّٰه تعالیٰ کلام چی څنګه دی زړه غواړی هغه سی به یی وایی؟ لږ دفکرخبره ده چی د اللّٰه تعالیٰ کلام دعظمت څه ډك دی.

حکیمُ الامت مولانا اشرف علی تهانوی رحمة اللّٰه علیه فرمائی چی روزانه ته نیم ساعت پر یوه قاری صاحب سبق وایه نوانشاء اللّٰه تعالیٰ په دوو میاشتو کی به د قرآن شریف د الفاظو درسته ادائینه وکړې.